

# ل

د دې لوست موخه دا ده چې زده کوونکي د ( ل ) د توري، نوم، بڼه او غږ وپېژني اوهم يې وليکلی شي.

**پوښتنې:**

۱. په پورته انځور کې لالا څه کوي؟
۲. بزګران څه شیان کري؟
۳. له غنمو څخه څه په لاس راځي؟



لمر



لور



ګل

# لو

| لو – ګ - ري |
| --- |
| لا - لا |
| رېــ - بل |

لالا لو کوي.

غنم په لور رېبل کېږي.

لوګري د لو کالي اغوندي.

لوګري
لالا
رېبل





۱. زده کوونکي دې د ( لوګري،لالا، ګل ) دکلمو په څپو باندې کار وکـــړي.

بيادې په دغو کلمو کې د ( ل ) دتوري ځای څرګند کړي.

۲. زده کوونکي دې په تخته د ( لوګري، کالي، رېبل،ګل ) په کلمو کې د ( ل ) له توري دايره وکاږي.











# م

د دي لوست موخه دا ده چې زده کوونکي د ( م ) د توري نوم، بڼه او غــږ وپېژنــي اوهم يې وليکلی شي.


مار


موږک

پوښتنې:

١. تاسې د خپلې مور سره څه مرستې کولی شئ؟
٢. آيا تاسې د خپلې مور د سوغات څخه مننه کړې ده؟
٣. تاسې له هغو زده کوونکو سره چې مور او پلار نه لري څنګه مرسته کوئ؟

## مور

| مور |
| --- |
| ما - ما |
| احـــ – ت- رام |
| ما- هي |

مور
ماما
احترام
ماهي

زما مور کالي ګنډي.

مور په اولاد حق لري.

مورې د مور احترام کوو.





۱. زده کوونکي دې د ( مور،ماما، احترام ) دکلمو په څپو باندې کار وکړي.

۲. بیادې په دغو کلمو کې د ( م ) دتوري ځای څرګند کړي.

۳. زده کوونکي دې په تخته د ( مار، مورېک، ماما او مابنام ) په کلمو کې د ( م ) تر توري دایره وکاږي.










# ن

د دې لوست موخه دا ده چې زده کوونکي د ( ن ) د توري، نوم، بڼه او غږ وپېژنــــي اوهم يې وليکلی شي.


ناک


ونه


انار

پوښتنې:

۱. نارنج په کوم موسم کې پخېږي؟

۲. کومې مېوې نارنج ته ورته دي؟

۳. ستاسې کومې مېوې خوښېږي؟

# نارنج

| |
|---|
| نا - رنج |
| نن – ګر- هار |
| ا – نار |

نارنج

ننګرهار

انار

د حنان نارنج خوښېږي.

د نارنج خوړل ګټه لري.

په ننګرهار کې نارنج ډېر پيداکېږي.





۱. زده کوونکي دې د ( نارنج، ننگرهار، انار ) دکلمو په ځپو باندې کار وکړي. بيا دې په دغو کلمو کې د( م ) توری څرگند کړي.

۲. زده کوونکي دې په تخته د ( ناک، ونه، نارنج، ننگرهار ) په کلمو کې د ( م ) له توري دايره وکاږي.






نـــ نـــ نـــ نـــ ن ن ن ن ن

# ڼ



د دې لوست موخه دا ده چې زده کوونکي د ( ڼ ) د توري، نوم، بڼه او غږ وپېژنــــي اوهم يې ولیکلی شي.

**پوښتنې:**

۱. په پاس انځور کې څه وينئ؟ خبرې پرې وکړئ؟

۲. آيا تاسو چېرې اتڼ ليدلی دی؟

۳. آيا تاسې اتڼ کولی شئ؟










## اتڼ

| |
|---|
| ا - تڼ |
| څــ - ڼې |
| ب - ڼ - که |
| مــ - ڼې |

اتڼ

څڼې

بڼکه

منې

**اتڼ د افغانانو ملي دود دی.**

**افغانان له اتڼ سره مينه لري.**

**خلک په خوښيو کې اتڼ کوي.**



۱. زده کوونکي دې د ( اتڼ، څـــڼـــې، بڼکه، مڼې ) دکلمو په څېرو باندې کار وکړي.بيادې په دغه کلمو کې د ( ڼ ) دتوري ځای څرګند کړي.

۲. زده کوونکي دې په تخته د ( اتڼ،څڼې، بڼکه، مڼې ) په کلمو کې د ( ڼ ) له توري دايره وکاږي.



کورنۍ دنده

ڼــ ڼــ ڼــ ڼــ ڼ ڼ ڼ ڼ ڼ



# و

د دې لوست موخه دا ده چې زده کوونکي د ( و ) د توري ،نوم، بڼه او غږ وپېژنـــي اوهم يې وليکلی شي.

پوښتنې:

۱. ولې واوره زموږ په ژوند کې ارزښت لري؟
۲. په واوره کې مو څه ډول لوبې خوښېږي؟
۳. دتصوير له مخې مو کوم ژوي خوښېږي او ولې؟



غوا



هوسۍ



پیشو

## واوره

په ژمي کې واوره اوري.

واوره ډېره يخه ده.

کوچنيان په واوره کې لوبې کوي.

| |
|---|
| واو - ره |
| سم- سور |
| هېـــ - واد |
| پيـــ- شو |

واوره
سمسور
هېواد
پيشو





۱. زده کوونکي دې د ( واوره، سمسور، هېواد، پیشو ) دکلمو په څپــو باندې کار وکړي. بیادې په دغوکلمو کې د ( و ) دتوري ځای څرګند کړي.

۲. زده کوونکي دې په تخته د ( واوره،سمسور، هېواد، پیشو ) په کلمو کې د ( و ) له توري دایره وکاږي.












د دې لوست موخه دا ده چې زده کوونکي د ( ٥ ) د توري، نوم، بڼه، غږ وپېژنـــي اوهم يې وليکلی شي.



دروازه



پياله



زينه

پوښتنې:

١. آيا تاسو څوک ليدلي دي چې له لرګي څخه يې څه شی جوړ کړی وي؟
٢. پرته له ارې څخه د نجارۍ نور کوم اسباب پېژنئ؟
٣. له لرګي څخه څه شيان جوړېدی شي؟

# اره

| ا - ره |
| --- |
| در- وا - زه |
| تبـــ- ره |

اره
دروازه
تبره

اره تبره غاښونه لري.

په اره لرګي اره کېږي.

نجار په اره کار کوي.





۱. زده کوونکي دې د ( اره، دروازه، تبره ) دکلمو په څپو باندې کار وکـــړي.

بیادې په دغوکلمو کې د ( ه ) توری څرګند کړي.

۲. زده کوونکي دې په تخته د ( دروازه، اره، پیاله، زینه) په کلمو کې د ( ه ) له

توري دایره وکاږي.










# ی

د دې لوست موخه دا ده چې زده کوونکي د ( ی ) د توري ، نوم، بڼه او غږ وپېژني اوهم يې ولیکلی شي.


منگی


ټولگی


خټکی

پوښتنې:

١. په پاس انځور کې څه وینئ؟ خبرې پرې وکړئ!

٢. په منۍ کې خلک څه کارونه کوي؟

٣. پرته له خټکي څخه، په منۍ کې نورې کومې مېوې پيداکېږي؟

| |
|---|
| مـــ – نی |
| ســـ- ړی |
| زړ – گی |
| لر – گی |

منی
سړی
زړگی
لرگی

## منی

زړگی خټکی خوري.

خټکي په منۍ کې پخېږي.

منی د مېوو موسم دی.





۱. زده کوونکي دې د ( منی، سړی، زړګی، لرګی ) دکلمو په ځپو کار وکړي.

بیادې په دغو کلمو کې د ( ی ) دتوري ځای څرګند کړي.

۲. زده کوونکي دې په تخته د ( یارګل، منی، سړی، وری، روغتیا، منګی ) پـــه

کلمو کې د ( ی ) تر توري دایره وکاږي.






ی ی ی ی ی ی ی ی



# ې

د دې لوست موخه دا ده چې زده کوونکي د ( ې ) د توري ، نوم، بڼه اوغږ وپېژني اوهم يې وليکلی شي.

پوښتنې:

۱. کومې مېوې مو خوښېږي؟
۲. څو ډوله مېوې پېژنئ؟
۳. ولې مېوې روغتيا ته ګټه رسوي؟
۴. کومې مېوې وچېږي؟ نومونه يې واخلئ!



مېوې



خولۍ



بياتيګانې

## مېوې

باغوان مېوې وچوي.

زمونږ هېواد ډېرې مېوې لري.

ځينې خلک په بازارکې مېوې خرڅوي.

| مې – وې |
|---|
| هېــ- واد |
| ډې – رې |

مېوې
هېواد
ډېرې





۱. زده کوونکي دې د ( مېوې، ډېرې، هېواد ) دکلمو په څپو کار وکړي. او په هغو کلمو کې دې د (ې) توری ځرګند کړي.

۲. زده کوونکي دې په تخته د (مېوې، لېرې، هېواد، ډېرې) په کلمو کې د (ې) له توري دايره وکاږي.






ې ې ې ې ې ې ې ې ې ې

# ې



د دې لوست موخه دا ده چې زده کوونکي د ( ې ) د توري، نوم، بڼه ، غږ وپيژنـــي اوهم يې وليکلی شي.

پوښتنې:

۱. تاسې په کور کې چرګان لرئ؟
۲. له چرګانو څخه څه ګټه اخلئ؟
۳. ستا په کور کې د چا هګۍ خوښېږي؟
۴. تاسې څه ډول پخې هګۍ خوښوئ؟



څپلې



خولې



جونګې



ډوډۍ

## هګۍ

| |
|---|
| هـــ – ګۍ |
| څپـــ - لې |
| نجـــ – لې |
| ډو – ډۍ |

هګۍ
څپلې
نجلې
ډوډۍ

د هيلې هګۍ خوښېږي.

د هګيو خوړل ګټه لري.

ملالې هوسې ته تازه هګۍ راوړې.





۱. زده کوونکي دې د ( هګۍ، څپلۍ، نجلۍ، ډوډۍ ) دکلمو په څېر کار وکړي، بیادې په دغو کلمو کې د ( ۍ ) دتوري ځای څرګند کړي.

۲. زده کوونکي دې په تخته د ( خولۍ، ډوډۍ، جونګړۍ ، څپلۍ، هګۍ ) په کلمو کې د ( ۍ ) له توري دایره راتاوه کړي.






ۍ ۍ ۍ ۍ ۍ ۍ ۍ ۍ ۍ

# ئ



د دې لوست موخه دا ده چې زده کوونکي د ( ئ ) د توري، نوم، بڼه، غږ وپېژنـــي اوهم يې وليکلی شي.

پوښتنې:

۱. ليک څه ډول استول کېږي؟

۲. پرته له ښوونځي څخه نور چېرې درس لولئ؟



کتاب ولولئ



ليک ولولئ



ليک وليکئ

# ولولئ

| ول – و - لئ |
| --- |
| و – لي - کئ |

ولولئ

وليکئ

نجونې او هلکان سبق لولي.

تاسې هم په ښوونځي کې سبق ولولئ، بيا يې په کور کې وليکئ!





۱. زده کوونکي دې د ( ولولئ، ولیکئ ، ولولئ ) دکلمو په څېر باندې کار وکړي، بیادې په دغو کلمو کې د ( ئ ) د توري ځای څرګند کړي.

۲. زده کوونکي دې په تخته د ( وخورئ، ولیکئ، ولولئ ) په کلمو کې د ( ئ ) له توري څخه دايره وکاږي.






ئ ئ ئ ئ ئ ئ ئ

# ي



د دې لوست موخه دا ده چې زده کوونکي د ( ي ) د توري، نوم، بڼه او غږ وپېژنــــي اوهم يې وليکلی شي.

پوښتنې:

١. په پورتني انځور کې څه وينئ؟
٢. له ګودر نه پرته خلک له کوم ځای څخه اوبه په لاس راوړي؟
٣. له منګي څخه پرته اوبه په څه شي کې ساتئ؟



دوبي



پيشو



منګي

## منګي

| |
|---|
| لو - لي |
| دو - بي |
| لي - کي |
| اچـــ - وي |

لولي
دوبي
ليکي
اچوي

دا منګي دي.

نجونې ګودر ته ځي.

له ګودرنه په منګيو کې اوبه راوړي.





۱.  زده کوونکي دې د ( لولې، دوبي، ليکي، اچوي ) دکلمو په څپو باندې کار وکړي. بيادې په دغو کلمو کې د ( ي ) توری څرگند کړي.

۲.  زده کوونکي دې په تخته د ( لولې، دوبي، ليکي، اچوي ) په کلمو کې د ( ي ) له توري دايره وکاږي.






يــ يــ يــ يــ ي ي ي ي ي



# ه

د دې لوست موخه دا ده چې زده کوونکي د ( هـــ ) د توري، نوم، بڼه او غږ وپېژني اوهم يې وليکلی شي.



هندوانه



هیلۍ

پوښتنې:

۱. په پورته انځور کې هیلۍ څه کوي؟

۲. له هیلۍ نه پرته نور کوم الوتونکي لامبي؟

۳. تاسې څوک پېژنئ چې لامبو ووهلی شي؟

| |
|---|
| هیـــ - لۍ |
| ما - هي |
| هو - سۍ |
| هـــ - ګۍ |

هیلۍ

ماهي

هوسۍ

هګۍ

# هیلۍ

هیلۍ په اوبو کې لامبو وهي.

هلکان هم په پاکو اوبو کې لامبي.

د ماشومانو لامبو وهل خوښېږي.





۱. زده کوونکي دې د ( هیلۍ، هوسۍ، هګۍ ) دکلمو په ځپو باندې کـــار وکړي ،بیادې په دغو کلمو کې د ( هـــ ) توری څرګند کړي.

۲. زده کوونکي دې د نیمګړو کلمو ښخه چې د ( هـــ ) په توري پیل شوې دي بشپړې کلمې جوړې کړي.













# الفبې

د دې لوست موخه ارز ونه او د ټولو تورو د ليکلو او لوستلو تکرارول دي.

| ا | آ | ب | پ | ت | ټ | ث | ج | چ | ح | خ | څ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ځ | د | ډ | ذ | ر | ړ | ز | ژ | ږ | س | ش | ښ |
| ص | ض | ط | ظ | ع | غ | ف | ق | ک | ګ | ل | م |
| ن | ڼ | و | هـ | ه | ی | ۍ | ې | ي | ئ | | |





١. زده کوونکي دې د الفبا توري دښوونکي دلارښوونې سره سم په خپلو کتابچو کې په ترتيب سره وليکي.



## د تېرو درسونو دتمرینونو تکرار او ارزیابي کول په لاندې ډول دي:
## ښوونکی دې دماشومانو پاملرنه تمرینونوته راواړوي.

### لومړی تمرین

۱- ماشومان دې لاندې توري په کلمو واړوي.

ط ، و ، ط، ي ، ط ، ا، هـ
ر ، خ ،ی ،ا، ط ، و،ط،ن

### دوهم تمرین:

۱- لاندې کلمې په تورو واړوئ.

منظره
نظر
ظاهر
حفیظ
نظمونه
نظم

### دریم تمرین:

۱- د ( غ ) دتوري په مرسته له نیمګړو کلمو څخه بشپړې کلمې جوړې کړئ.




### څلورم تمرین :

۱- زده کوونکي دې دلاندې جملو څپې راوښيي.

کریمه ، کومک ، کتاب ، کوي

### پنځم تمرین:

۱- زده کوونکي دې په خبرو اوډژوند په نورو برخو کې نوبت مراعات کړي.

### شپږم تمرین:

۱- لاندې ورته کلمې یوه له بلې سره ونښلوئ.

| | |
|---|---|
| میوې | هیواد |
| منګولې | مېلې |
| مستې | مزې |
| منې | منې |
| مزې | مستې |
| مېلې | منګولې |
| هیواد | میوې |

### اووم تمرین :

۱- په لاندې نیمګړو اوبشپړو کلمو کې د(ه) توری راپه ګوته کړئ او دایره تري راو کاږئ.

**تله، وتله، ته، جوړه، ډېره، په، تره، راوړه،څه، مه، څـه، پیاله، وراره**



د دې لوست موخه د زده کوونکو د الفبې د تورو د لوستلو او ليکلو پــه ارزښـــت پوهېدل دي.

پوښتنې:

۱. آيا تاسې دالفبې ټول توري وېلی شئ؟

۲. دالفبې ټول څو توري دي؟

۳. ستاسو نوم په کوم توري پيل کېږي؟

# د الفبې ترانه

څه ښکلي حرفـــونه دي    خـــوارږه يې آوازونه دي

څه روان درســـونه دي    ښکلي يې انځورونه دي

خوښ موټول مخونه شول    دهرمخ مضمونونه شول

روانـــې کلمې لولـــو    پـــه مينه يې جملې لولو

ګوتې مـــو لګيا شولې    د ليک سره آشنا شولې

خلاصـــه الفـــبا شـــوله

ژبه مو ګويـــــــا شوله

محمد عثمان نژند





۱. زده کوونکي دې د تختې پرمخ خپل نوم ولیکي او نورو زده کوونکو ته دې دخپل نوم لومړی توری ور په ګوته کړي.

۲. زده کوونکي دې دلوست په پای کې ورکړل شوی تمرین په کور کې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

| حرفونه | آوازونه | لګیا شوله | آشنا شوله |
|---|---|---|---|
| درسونه | | الفبا شوله | ګویا شوله |
| انځورونه | | کلمې لولو | جملې لولو |



.




توري

رواني کلمې لولو.



د دې لوست موخه دا ده چې زده کوونکي دکال څلور موسمونه وپیژني او دهـــر موســـم نوم زده کړی شي.

پوښتنې:

۱. تاسو د کال موسمونه پیژنئ؟
۲. کوم موسم مو خوښېږي؟
۳. تازه مېوې څه وخت پخېږي؟
۴. د ونو پاڼې په کوم موسم کې ژېړېږي؟

# دکال موسمونه

یو کال څلور موسمه دی. پسرلی،دوبی، منی او ژمی. په پسرلي کې بارانونه اوري. په دوبـــي کې هوا توده او مېوې پخېږي.

منی دمېوو او غلو موسم دی. په ژمي کې هـــوا سړه او کله کله واوره ورېږي.





۱. زده کوونکي دې په خپلو ګروپونو کې د ( پسرلي، دوبي، منی، ژمی ) کلمې په تورو واړوي.

۲. زده کوونکي دې د لوست په پای کې ورکړل شوی تمرين، چې د پاڼې په لمن ليک کې راغلی دی، وليکي.



کورنۍ دنده



موسم

په ژمي کې هوا سړېږي.



د دې لوست موخه دا ده چې زده کوونکي د اختر د نېکمرغو ورځو په باب معلومات پيداکړي.

پوښتنې:

۱. په انځور کې څه وينئ؟
۲. مسلمانان څو اخترونه لري او په اخترونو کې څه کوي؟
۳. تاسې په اختر کې څه کوئ؟

# د اختر ورځ

مور په يوه کال کې دوه اخترونه لرو. چې يو يې کوچنی اوبل يې لوی اختر دی. د اختر په ورځو کې نجونې او واړه هلکان لاسونه سره کوي. نوي کالي اغوندي، د خوښۍ او خوشحالۍ مېلې جوړوي او يوبل ته د اختر مبارکي وايي.





۱. زده کوونکي دې په خپلو ګروپونو کې د ( اختــر، کـــالي، مبـــارکي خوشحالي ) کلمې په تورو واړوي بیا دې هغه یوبل ته وښیي او یـــو د بل غلطۍ دې سمې کړي. ورکړل شوی تمرین دې زده کوونکي پـــه کور کې په خپلو کتابچو کې ولیکي.






کورنۍ دنده



اختر

په اختر کې یوبل ته مبارکي وایو.




د دې لوست موخه زده کوونکو ته د هېواد اود هېواد پالنې په هکلــه معلومــات ورکول دي.

پوښتنې:

۱. زموږ په هېواد کې څه څه شیان پیداکېږي؟
۲. ستا په خپل وطن کې څه شی خوښېږي؟
۳. موږ خپل هیواد ته څه ګټې رسولی شو؟

# زموږ هېواد

زموږهېواد ډېرښکلی دی. ډېرځنګلونــه او هسک غرونه لري. په ښکلو دروکې یې سیندونه بهېږي او خاوره یې دغلو دانو د کرلو له پــاره ګټوره ده. دا هېواد ډېرکانونه هم لري. هېــواد موږ ته دیوه کور په شان دی، نوراځئ چې خپــل هېواد ودان او آباد کړو.

آباد دې وي زموږ ګران هیواد افغانستان !





۱. زده کوونکي دې په خپلو ګروپونو کې د ( هېواد، ځنګلونه، غرونه ) کلمې په څپو واړوي.

۲. زده کوونکي دې د لوست په پای کې، لاندې تمرين په خپلو کتابچو کې کاروکړي .









هېواد

زموږ هېواد ډېر ښکلی دی.



د دې لوست موخه دا ده چې زده کوونکي په دې پوه شي چې زموږ ملـــي بـــيرغ د يووالي نښه ده.

پوښتنې:

۱. آيا تاسو بيرغ ليدلی دی؟

۲. زموږ د بيرغ رنګونه ښوولی شئ؟

۳. زموږ بيرغ دڅه شي نښه ده؟

# بيرغ

زموږ بيرغ درې رنګونه لري تـــور، ســـور اوشين. بيرغ زموږ د ملي يووالي نښه ده.

رپانده دې وي زموږ ملي بيرغ!

سرلوړي دې وي دافغانستان خلک!





۱. زده کوونکي دې په خپلو ګروپونوکې د ( بیرغ، شین، ملـــي، افغانـــستان ) کلمې په ځپو واړوي. او لاندې تمرین دې په کور کې کار وکړي.









بیرغ

بیرغ زموږ دیوالي ښه ده.



د دې لوست موخه دا ده چې زده کوونکي جرګه وپيژني او په ارزښت يې وپوهيږي.

پوښتنې:

۱. تاسې دجرګې په هکله څه پوهيږئ؟

۲. تاسې په خپلو منځو کې څه ډول پرېکړې کوئ؟

۳. کله چې تاسې تصميم نيسئ دنورو سره مشوره کوئ؟

# جرګه

جرګه زموږ يو پخوانی دود دی.

جرګه د هېواد له مشرانو څخه جوړيږي.

په جرګو کې د خلکو ستونزې اواريږي.

د جرګې پرېکړو ته هر څوک درناوی کوي.





۱. زده کوونکي دې په ټولګي کې دټولګي دپاکولو په هکله غونډه وکړي او د هغې په هکله دې پرېکړه وکړي چې د ټولو زده کوونکو په خوښه وي.

۲. زده کوونکي دې له نیمګړو کلمو څخه چې د ( لویه ) په کلمې سره پیل کېږي بشپړه کلمه جوړه کړي.




۳. زده کوونکي دې د لمن لیک تمرین په خپلو کتابچو کې ولیکي او یوبل ته دې وروښیي.






جرګه

د لویې جرګې غړ دخلکو غړ دی.



د دې لوست موخه دا ده چې زده کوونکي د سولې او آزادۍ په اړتيا پوه شي.

پوښتنې:

۱. په پورتني انځور کې څه وينئ؟
۲. تاسې نور کوم الوتونکي مرغان ليدلي دي؟
۳. تاسې په خپل کور کې الوتونکي مرغان ساتئ؟

# کوتره

| | |
|---|---|
| کاشکې!زه کوتره وای | غاړه مې کمره وای |
| ناسته په ډبره وای | ډېره تېز نظره وای |
| پښې مې د سرو زرو وای | ژوند مې بې خطره وای |





۱. زده کوونکي دې دټولګي په مخ کې نورې سندرې، ترانې او نظمونه چـــې زده يې وي ټولګيوالو ته ووايي.

۲. زده کوونکي دې لاندې تمرين په کور کې په خپلو کتابچو کې وليکي.









کوتره

کاشکې! ژوند مې بې خطره وای.



د دې لوست موخه دا ده چې زده کوونکي د همکارۍ په اهمیت پوه شي او دهغــې کلمې لوستل او لیکل زده کړي.

پوښتنې:

۱. آیا تاسې له چاسره مرسته کړې ده؟

۲. کله چې تاسو مرستې ته اړتیا درلوده چا د رسره مرسته کړې ده؟

۳. تاسې دکور په کوم کارکې مرسته کوئ؟

# همکاري

ټول ماشومان یو د بل همکارۍ ته اړتیا لري. دوی په هر کارکې باید یو بل ته لاس ورکړي.

ځکه په همکارۍ کې هرکار په ښه شان ســـرته رسېږي.

ماشومان په ګډه کار کې له یوبل څخه زده کړه کوي.





۱. زده کوونکي دې په څو ګروپونو ووېشل شي او دوی دې له هغو شیانو نــه چې ورسره آشنا دي لکه ( کمربند، رسۍ، قلم، لښته) کتارونه جوړ کړي او په پای کې دې وګوري چې دچا کتار اوږد دی.

۲. زده کوونکي دې له توروڅخه دکلمودجوړولو تمرین په خپلو کتابچو کــې ولیکي او دخپلوګروپونو غړوته دې وروښیي.

۳. زده کوونکي دې په کور کې دلن لیک تمرین ولیکي او بیا دې ولولي.









همکاري

هرانسان دبل مرستې اوهمکارۍ ته اړتیا لري.



د دې لوست موخه دا ده چې:

۱. زده کوونکي دانسانانو په برابرۍ پوه شي.

۲. په دې وپوهېږي چې ټول انسانان يو شان ټولنيز حقونه لري.

پوښتنې:

۱. آيا انسانان له يو بل سره توپير لري؟

۲. ولې ټول انسانان دعزت وړ دي؟

۳. ښه انسان څوک دی؟

# ښه انسان

ټول انسانان په يو شان پيدا شوي دي. هر انسان عزت لري. تور په سپين اوسپين په تور لوړوالی نه لري. خو هغه انسان تر نورو ښه دی چې نېکخويه وي ، ښه کارونه کوي او نورو ته يې ګټه رسېږي.





۱. زده کوونکي دې په خپلو ګروپونو کې ددغه چوکاټ ورته کلمې یوه له بلې سره ونښلوي.بیادې دلاندې نیمګړو کلمو څخه بشپړې کلمې جوړې او یوبل ته دې وروښیي.

| | |
|---|---|
| انسان | عزت |
| عزت | انسان |
| تږول | یوشان |
| یو شان | تږول |






کورنۍ دنده



انسانیت

هر انسان عزت لري.



د دې لوست موخه دا ده چې زده کوونکي په ټولنيز ژوند کې د ( زغم ) په ارزښت او اهميت ښه پوه شي.

پوښتنې:

۱. آيا تاسې کوم وخت له چا سره شخړه يا لانجه کړې ده؟
۲. پرته له شخړې څخه ستاسې لانجه په بله کومه لاره نه حل کېدله؟
۳. په کوم وخت کې سړی له صبر او زغم څخه کار واخلي؟

# زغم

کله کله ماشومان په خپلو منځو کې لانجې کوي. ماشومانو ته په کار دي چې د شخړو په وخت کې له زغم اوصبرکولو څخه کار واخلي او له ځان څخه دا پوښتنه وکړي چې آيا دا لانجه په شخړه ارزي اوکه نه؟ شخړه ښې اړيکې له منځه وړي او ملګرتيا ته زيان رسوي.





۱. زده کوونکي دې په خپلو ګروپونو کې دمخامخ چوکاټ ورته کلمې يــوه له بلې سره ونښلوي.

| | |
|---|---|
| شخړه | لانجه |
| زغم | غوره |
| خبرې | خبرې |
| لانجه | زغم |
| غوره | شخړه |

۲. زده کـــوونکي دې لانـــدې نيمګړې کلمې بشپړې کړي او يوبل ته دې ور وښيي.






کورنی دنده



زغم

لانجه او شخړه ښه کار نه دی!



د دې لوست موخه زده کوونکو ته د وخت اوخپل مسوولیت پېژندنه او په دوی کې دخپلواکۍ دروحیې پیدا کول دي.

پوښتنې:

۱. هره ورځ څه کارونه کوئ؟

۲. آیا دلوبو له پاره وخت ټاکئ؟

۳. کوم کارونه کولی شئ؟

۴. تاسې له چاسره ښه کار کړی دی؟

# ښه ماشومان

ښه ماشومان د هر کار له پاره ټاکلی وخت لري.

دوی په خپل وخت ښوونځي ته ځي او د کور په کارونو کې مرسته کوي. همدارنګه په ټاکلي وخت لوبې کوي او په لوبوکې چا ته زیان نه رسوي. ښه ماشومان د ټولو خلکو درناوی کوي او له هر چا سره ښې اړیکې ساتي.





۱. زده کوونکي دې په خپل ګروپ کې په مشوره ځانونو ته یوه- یوه دنـــده وټاکي چې دټولګي اوښوونځي په نظم او ساتنه کې ونډه واخلي. دمثال په توګه: په ټولګي کې دکاغذونوټولول، دتختې پاکول، دڅوکیو اومېزونـــو ترتیب او داسې نور.

۲. زده کوونکي دې دغه نیمګړې کلمې بشپړې کړي او په خپلو کتابچو کې دې ولیکي.









وخت

دهرکار له پاره ټاکلی وخت وټاکئ.



د دې لوست موخه  دا ده چې زده کوونکي  په ژوند کې د اوبو په ارزښت او اهمیت پوه شي او د نویو کلمو لیکل او لوستل زده کړي.

پوښتنې:

۱. د ناپاکو اوبو څښلو سره انسان په کومو ناروغیو اخته کېږي؟

۲. اوبه کروندو اوبوټو ته څه ګټه لري؟

۳.  مور ولې خپل لاس، خوله، مخ او ټول ځان په پاکو اوبو مینځو؟

۴. آیا ټولې اوبه پاکې دي؟

# اوبه او ژوند

اوبه زموږ ژوند ته ډېرې ګټې لري. که اوبه نـــه وای د ټولو انسانانو او ژوو ژوند به نه و.  ټولې کروندې ونې او بوټي د خپل ژوند له پاره اوبو ته اړتیا لري. موږ هم باید له پاکو اوبو څخه د څښلو، ځان پاکولو او نورو اړتیاوو د لرې کولو له پاره کار واخلو چې روغتیا مو وساتل شي.





۱. زده کوونکي دې په خپلو ګروپونو کې د لاندې چوکاټ د تــورو څخــه کلمې جوړې کړي.

| ژ – و – ن – د |
| --- |
| ا – و – ب – ه |
| م – ې – و – ې |
| س – ی – ن - د |

اوبه — آبادي ده.
اوبه — ژوند دی.
اوبه — سمسورتیا ده
اوبه — ښکلا ده.
اوبه — غلې داني پخوي.



کورنۍ دنده



**اوبه**

**انسانان په اوبو ژوندي دي.**



د دې لوست موخه دا ده چې زده کوونکي دلمر دګټو په ارزښت پوه شــــي او دنــــوو کلمو لیکل او لوستل زده کړي.

پوښتنې:

۱. غلې او دانې په څه شي پخېږي؟

۲. لمر څه وخت راخېږي؟

۳. لمر څه وخت لوېږي؟

# لمر

زمونږ هېواد ډېر ځلانده لمر لري.

لمر ساړه لرې کوي او تودوخه راولي.

لمر ټولو ونو، بوټو اوسبوته ژوند وربښي.

لمر تیارې رڼا کوي.





۱. زده کوونکي دې په خپلو ګروپونو کې دلاندې چوکاټ له تورو څخه کلمې جوړې کړي او په خپلو کتابچو کې دې ولیکي.

ل – م – ر
ځ – ل – ا – ن – د – ه
ت – و – د
س – ا- ړ – ه
ت – ی – ا – ر- ه

ل — امبو
ل — امبي
ل — مونځ
ل — ومړی
ل — ار






لمر

لمر ساړه لېرې کوي.



د دې لوست موخه دا ده چې زده کوونکي د روغتیا په ارزښت او د هغې په ساتنه پوه شي او د نورو کلمو لوستل او لیکل زده کړي.

پوښتنې:

۱. سپورت څه ته وايي؟

۲. آیا تاسې سپورت کولی شئ؟

۳. نجونې او هلکان پرته له سپورت څخه د روغتیا د ساتنې له پاره نورڅه کولی شي؟

# روغ سړی

روغ سړی هرسهار له خوبه پاڅېږي سپورت کوي. هغه په وړو خبرو ځان نه خپه کوي اوکوښښ کوي چې خوشحاله وي. روغ سړی نه یوازې خپل ځان بلکې خپل چاپېریال هم پاک اوسوتره ساتي. روغ سړی مېوې او نور خوراکي شیان په اوبو پاک مینځي اوبیايې خوري. پاکوالی روغتیا ته ډېره ګټه لري.





۱. زده کوونکي دې په ګډه سپورتي حرکتونه په عملي توګه سرته ورسوي.

۲. زده کوونکي دې دلن لیک تمرین په کور کې ولیکي.






روغتیا

روغ سړی هروخت خوشحاله وي.



موخه: زده کوونکي به د مخدره توکو او نورو بدو عملونو له پایلو خبر شي او دنوو کلمو لوستل او لیکل به زده کړي.

پوښتنې:

۱. نیشه یي مواد ولې بد دي؟
۲. څوک چې چلم او نسوار کاروي دهغوی دخولې بوی بد لګېږي؟
۳. بد عملونه نورڅه زیانونه لري؟

# بدکارونه

سګرټ، نسوار، چرس او د نورو نشه يي موادو کارول روغتیا ته زیان رسوي.
کله کله داسې بد عملونه د انسان د مرګ سبب هم کېږي. د نشې بل زیان د پیسو زیان دی.له بدو کارونو څخه ځان ساتل د خدای(ج) امر دی.





۱. زده کوونکي دې په خپلو ګروپونوکې دمخامخ چوکاټ له تورو څخه کلمې جوړې کړي.

۲. زده کوونکي دې دلن لیک تمرین په کورکې ولیکی.

| | |
|---|---|
| بد | عمل |
| | کارونه |
| | عملونه |
| | کړه وړه |

| |
|---|
| س – ګ – ر– ټ |
| ن – س – و – ا – ر |
| ت – ا – و – ا – ن |
| چ – ر - س |



تاوان:

بد عملونه روغتیا ته تاوان رسوي.



د دې لوست موخه دا ده چې زده کوونکي داورلګیت په خطرونو پوه کړی شي.

پوښتنې:

۱. په پورتني انځور کې څه وینئ؟

۲. پرته له اورلګیت څخه له نورو کومو شیانو سره لوبې کول خطر لري؟

۳. که چېری کوم شی اور واخلي تاسې باید څه وکړئ؟

# اورلګیت

ګلنارې! ګل اندامه وګوره!

ګل اندامه اورلګیت ته نږدې کېږي.

ګل اندامې! له اورلګیت څخه لېرې ګرځه،

ځکه چې اورلګیت د لوبو شی نه دی اوخطرلري.





۱. زده کوونکي دې په خپلو ګروپونو کې ددغه چوکاټ ورته کلمې یوه له بلې سره ونښلوي مثال يې ورکړل شوی دی.

| | |
|---|---|
| اورلګیت | لیرې |
| خطر | اور |
| اور | ګل ناره |
| ګل ناره | خطر |
| لیرې | اورلګیت |

۲. ښوونکی دې زده کوونکي په ګروپونو وویشي ترڅو دورکړل شوي تمرين نیمګړې کلمې بشپړې کړي.






کورنۍ دنده



اورلګیت:

داورلګیت څخه خطر پیداکېږي.



د دې لوست موخه  دا ده چې زده کوونکي د نوو کلمو لوستل او ليکل زده کړي او د زړښت له مفهوم سره آشنا شي.

پوښتنې:

۱. په انځور کې څه وينئ خبرې پرې وکړئ؟

۲. زوړ سړی ولې کړوپ کړوپ په لاره ځي؟

۳. سپين ږيري ربنتيا په ځوانۍ پسې لټه کوله؟

# ځواني لټوم

يوسپين ږيری کړوپ، کـــړوپ، پـــه لاره روان و. شايې کړوپه وه. يوهلک په مخه ورغی، پوښتنه يې ترې وکړه، باباجانه څه لټوې؟

ده ورته وويل، "چې ځواني لټوم ځواني!!!"





۱. زده کوونکي دې په ټولګي کې اويا دباندې په يوه ګروپ کې سره کښېني دهر چاچې په زړه پورې کيسې زده وي په نوبت سره دې نورو ټولګيوالوته ووايي.

۲. زده کوونکي دې دلن ليک تمرين په خپلو کتابچو کې وليکي.





کورنی دنده

څواني:

بابا څواني لټوي.



د دې لوست موخه دا ده چې:
١. زده کوونکي دکیسو په مرسته دنوو کلمو لیکل او لوستل زده کړي.
٢. د انا اولمسیانو ترمنځ دخوږو اړیکو پېژندل دي.

پوښتنې:

١. ستاسو انا له تاسو سره په خپل کور کې اوسېږي؟

٢. ستاسو انا له تاسو سره څه کوي؟

٣. د انا یوه کیسه مورې ته ووایئ؟

# انا

زمری چې ډېر کوچنی و، له خپلې اناڅخه یې پوښتنه وکړه: رښتیا ووایه، څـــومره مـــوده کېـږي چې ته زما انا یې؟ انا خپل لمسي ته وکتل او ورته یې وویل: له هغې ورځې نه چې ته دې دنیاته راغلی یې. زمري وویل: که چېرې زه نه وی راغلی ته زما انا نه کېدې؟ ښه نو اوس څه شی راکوې چې ته مې انا کړې یې.





۱. زده کوونکي دې په ټولګي کې اویا دباندې په یوه ګروپ  کې سره کېنیني د هرچا  چې د  انا او یا نورې په زړه پورې کیسې زده وي په نوبت ســـره دې نوروته ووایي.

۲.  زده کوونکي دې دلن لیک تمرین په خپلو کتابچو کې ولیکي.







انا

انا ماته کیسې کوي.



د دې لوست موخه دا ده چې زده کوونکي  په دې پوه شي چې ټول خلک ددرناوي ور دي.

پوښتنې:

۱. تاسې دخلکو څه ډول درناوی کوئ؟

۲. درناوی چاته باید وشي؟

۳. ستاسو له نظره کوم کارونه ښه دي؟

# درناوی

ټول انسانان که ښځې دي اوکه نارینه، که سپین ږیري وي اوکه ځوانان او یا ماشومان ، د درناوي ور دي. ښه ماشومان د ټولو خلکو د رناوی کوي. په هر کارکې نوبت مراعاتوي. د سپین ږیرو نه مخ ته نه ځي. د چا په خبروکې نه لوېږي. او دوی تل له هرچا سره ښه چلند لري.





۱. زده کوونکي دې په نوبت سره دټولګي مخ ته راشي او زده کوونکو ته دې په دې هکله چې دوی څه ډول اوچا ته درناوی کوي ، خبرې وکړي.

۲. زده کوونکي دې دلن لیک تمرین په خپلو کتابچو کې ولیکي.






درناوی

ټول انسانان ددرناوي وړ دي.



د دې لوست موخه دا ده چې زده کوونکي د دوستۍ او د ملګرتیا په ارزښت پــوه شي، دنوو کلمو لیکل او لوستل زده کړي.

پوښتنې:

۱. تاسې دوستان لرئ؟

۲. آیا تاسو له چاسره څه ډول مرسته کړې ده، ؟

۳. د ښه دوست درلودل څه ګټې لري؟

# دوستي اوملګرتیا

توریالی د زمرک ښـــه ملګـــری دی. دوی همېشه له یو بل سره مرسته کوي. کله چې یو خپه وي، نود خپل زړه حال بل ته وایي.

زمرک د یوه کـار کولـو څخه مخکې دخپل ملګري سره مشوره کوي. دوی همېشه له یـــو بل سره لوبې او ساعت تېري هم کوي.





۱.  زده کوونکي دې په خپلو ګروپونو کې په نوبت سره دخپلو دوستانو او ملګرو دښو کړو وړو په هکله خبرې وکړي.

۲.  زده کوونکي دې دلمن لیک تمرین په خپلو کتابچو کې ولیکي.









دوستي

توریالی دزمرک ملګری دی.



د دې لوست موخه دا ده چې زده کوونکي د روغې جوړې په ارزښت او اړتیا پـــوه شـــي او د نووکلمو لیکل اولوستل زده کړي.

پوښتنې:

۱. پخلاینه څه ته وایي؟
۲. د مرورو کسانو پخلاتوب تاسو لیدلی دی؟
۳. آیا تاسو کوم وخت له چاسره لانجه کړې ده؟
۴. آیا تاسو څوک پخلا کړي دي؟

# روغه جوړه

کله چې د ماشومانو ترمنځ لانجه پیداشي بیا دوی له یو بل سره لوبې اوخبرې نه کوي.

مرور ماشومان باید د ملګرو په مرسته پخـــلا شي. ترڅو خپلو لوبو ته دوام ورکړي.





۱. زده کوونکي دې په خپلو ګروپونو کې د ( روغې جوړې ) پــه هکلــه کيسې وکړي، دمثال په توګه : دوی دچاسره په څه شي شخړه کړې ده. او بیا څه ډول پخلا شوي دي؟

۲. زده کوونکي دې دلن لیک تمرین په خپلو کتابچو کې ولیکي.






روغه جوړه

ماشومان تل له یو بل سره روغه جوړه



د دې لوست موخه دا ده چې زده کوونکي له کتاب سره مینه پیدا کړي او ښې ساتنې ته يې وهڅول شي.

پوښتنې:

۱. ولې کتاب ستاسې ښه ملګرى دى؟

۲. له دې کتاب څخه مو څه شیان زده کړي دي؟

۳. په دې کتاب کې مو کوم شیان خوښ دي؟

۴. کتاب باید څه ډول وساتل شي؟

# کتاب

نــوم زمــا کتاب دى — تاته مې خطــاب دى

زه ستا ښــه آشنا يمــه — تــاتــه کيـــسې وايمه

خومره ښې کیسې لرم — شاتو نــه خوږې لرم

مشق دې دلیکـــنو یم — هم دې دلوستـــلو یم

پام مې په ساتلو کـــړه — په پاڼــو اړولـــوکړه

پاک مې له ګردونو کړه — پام په انــځورونو کړه

ښکلى مې هر باب دى

نــوم زما کـــتاب دى

اروابناد محمد عثمان نژند





۱. زده کوونکي دې په خپلو ګروپونو کې دکتاب په هکله یوه- یوه جمله ولیکي او بیا دې د خپل ګروپ جملې په یوه پاڼه کې ولیکي او دټولګي په مخ کې دې ولولي. هر ګروپ دې داکار په نوبت سره سرته ورسوي.

۲. زده کوونکي دې د لمن لیک تمرین په خپلو کتابچو کې ولیکي.






کورنۍ دنده



کتاب

کتاب زمونږ ملګری دی.

# دهیلۍ خړرنګه بچی

هیلۍ او دهغې بچیان په خپلو منځو کې یو بل ته ډیر ګران وو او په خوشحالۍ یې ژوند کاوه.



کله چې وروستی بچی له هګۍ څخه راووت، د هغه رنګ خړ او له نوروبچیانو څخه لوی و.





مورته خړ بچی د نورو په څېر ګـــران و

ولې نوروبچیانوته دا خړ بچی چې دهغو

په شان نه و، ګران نه و، ځوراوه بـــه

یې. او ویل یې چې هغه بدرنګه دی.



خړ بچی دهغو له لاسه ډېر په تـــنګ و

او له کوره لېرې ولاړ. هغه هلته یوازې

شو او ډارېده. هغه پـــه خپـــل کـــور

اوخپلوانو پسې خپه شوی و.



هوا سړېدله، يوه ورځ يې وليدل چـــې لوی الوتـــونکي د برپورتـه پـه هوا کې الوزي. هغه الوتونکي ډېر ښکلـــي وو. کوچني بچي وويل: کاشکې زه بدرنګه نه وی.



په پسرلي کـــې هغې، همغــه ښکلـــي الوتونکي بیاهم ولیدل. داځلې هغه مرغان ددې مخې ته راکوز شول او ورتـــه یـې وویل: چې ته زموږ په څېر یوه هیلۍ یې.



دې باور نه کاوه، خوچې کله يې ترخپلو پښولاندې اوبو کې وکتل، خپله څېره يې وليده پوه شوه، چې دا يوه بدرنګه هيلۍ نه، بلکې هغه نوره غټه شوې او ديــــوې ښکلې هيلۍ په څېرده.

# د پوهنې ترانه

پوهنه ده رڼا    وطن ته موښکلا
کتاب او قلم    زموږه رهنما

پوهنه ده رڼا،وطن ته موښکلا
کتاب او قلم زموږه رهنما

وطن زما يې ځان    له تانه شم قربان
ته وينه دافغان    ته لوړ په ټول جهان

پوهنه ده رڼا،وطن ته موښکلا
کتاب او قلم زموږه رهنما

آباد اوسې آباد    وطنه ته شې ښاد
موږه سرښندوپه تا    اوساتو دې آزاد

پوهنه ده رڼا،وطن ته موښکلا
کتاب او قلم زموږه رهنما

ته کور يې هم مې ګور    ته پلارېې هم مې مور
ته زړه دآسيا    او زما دسترګو تور

پوهنه ده رڼا،وطن ته موښکلا
کتاب او قلم زموږه رهنما

ته ننګ يې دآريا    او تاج يې ديما
ځارېږمه له تا    افغانستان زما

پوهنه ده رڼا، وطن ته موښکلا
کتاب او قلم زموږه رهنما

محمد مُعین مرستیال